

# د ځارويو روغتيا او توليد



دريم کال | خلورمه ګڼه | ليندۍ، ۱۳۷۸ | دري مياشتنۍ خپرونه



## په افغانستان کې د غواګانو نسل او حاصلاتو ته وده ورکول

*داکتر اولف تيمی (ژباړنه: سيد ګل صافی)*

د افغانستان په ټولو برخو کې غواوې د دوه عمده مقصدونو هر يو لکه شيدې او د کروندو د کښت په خاطر ورڅخه کار اخيستل کيږي. حتی يو ډير کوچنی او غريب مالدار په افغانستان کې لږ تر لږه يوه غوا د شيدو او د نورو محصولاتو لپاره ساتي اما په حقيقت کې اکثر مالداران له يوی څخه زياتی غواوی لري. د يوی اندازی له مخی همدا اوس څلور ميلونه غواوی په افغانستان کې موجودی دي. په تيرو وختونو کې يو څه هڅه شوی وه تر څو د غواوو حاصلاتو ته وده ورکړي اما دا کار په څو محدودو ځايونو کې په نظر کې نيول شوی و او يوائې په بعضی محدودو برخو د توليداتو باندی متمرکز و. په ۱۹۹۸ کال کې د ملګرو ملتونو د خوراك او کرهنې د اداري (FAO) له خوا يو جامع پروګرام طرح .......

پاتی په اووم مخ کی.



د PRB کارکوونکي په کابل کی د شيدو د راجمع کولو په حالت کی

په دې ګڼه کې:




کتونکي:
داکتر سيد ګل صافی
داکتر عبد العظيم ناصری
داکتر محب الله حليمي

خپروونکي اداره:
د ملګرو ملتونو د خوراك او کرهنې اداره
د غذا د تامين لپاره د مالداری د پراختيا پروګرام

کمپيوټري کمپوز:
د FAO د علمي معلوماتو څانګه

پته:
کور نمبر ۸، الف او ب، دکوځي نمبر ۳۰، ايف ۱/۷
پوست بکس نمبر ۲۷۱۳
اسلام اباد پاکستان

تليفون:
۸۲۱۵۱۷، ۸۲۷۰۲۵، ۸۲۱۶۰۳-(۵۱)-۹۲
فکس: ۸۲۸۱۷۳-(۵۱)-۹۲

اي ميل:
tjbarfao@isb.comsats.net.pk

# دونر کاو سیندروم (Downer Cow Syndrome)

ژباړنه: داکتر محب الله حلیمي

کله کله د ملك فیور (Milk fever) هایپوکلسیمیا (Hypocalcemia) پارچورینت پاریسس (Parturient paresis) په واقعاتو کې یوه غوا سره د دې چې ملك فیور (Milk fever) یې په بریالي ډول علاج شوی هم وي پر ځمکه غورځیږي او بیا هیڅکله نه پاځیږي. اصلي وجه یې د اوږدې مودې لپاره د بدن لاندې په یوې وروستنۍ پښې (په زیاته توګه ښي پښه) د غوا ځملاستل دي. که چیرته دغه موده شپږ ساعته یا زیات وخت ونیسي نو معمولاً پښې د عضلې د عصب دایمي خرابوالي منځ ته راوړي. چې دا د ماینسوتا (Minnesota) د پوهنتون د Dr.V.S. Cox د بشپړه نتیجه اخیستنې څخه دی. د داکتر Cox د کار خپله تجربه داسې وړاندیز کوي چې د رنځ څخه ښه شوی او دونر (Downer) غوا د عضلې یو شان ته اندازه خرابوالی ښایي لیکن د شیاتیك (Sciatic) عصب د خرابوالي مختلفې درجې دي، د ضررمنده عصب وجه دا تعینوي چې یوه ځملاستې غوا د دونر (Downer) حالت ته تللې ده. په ځینو خارویو کې د هغه د بدن د حالت لږ تغیر د عصب زیانمنتوب ګڼي.

د هغه په تجربو کې کله چې غوا ژر تر ژره د بې هوښۍ څخه ښه شوه، خپله ښي پښې ته یې د بدن د لاندې څخه حرکت ورکړ. دا پښه وغځېده او شخه شوه. کله چې غوا کوښښ وکړ چې په وروستیو پښو ودریږي، ویې نه شو کړای چې دغه پښه د بدن لاندې پر ځای کړي. یواځې کیڼې پښې یې د ودریدلو لپاره کار کولو، لګن خاصره یې د معیوبه پښې خوا ته کږه وه د کوم حالت په نتیجه کې چې خاروی خپل توازن له لاسه ورکوي او په ځمکه راغورځیږي.

یو ځلې چې یوه غوا ولویده او د ملك فیور (Milk fever) نښې نښانې وښیې، داکتر Cox تاکید کوي چې د خاروي موقعیت ته باید تغیر ورکړل شي تر څو د وترنري مرستو د رسیدلو پورې د انساجو د متضرره کیدلو څخه مخنیوی وکړي. کله چې پښې راغونډې وي او د ملاستې ځای یې نرم نه وي نو کوم نرم ځای ته یې انتقال کړي. د دې لپاره چې دا مقصد تر لاسه شي نو خاروی په یو غټه خو قاته نرمه تخته واچوي چې په اسانۍ سره د حرکت په وخت کې تري استفاده وشي.

داکتر تې انډریوس (T.Andrews) د دغه سندروم (Syndrom) وجهې د میتابولیکي عارضو په شمول لکه هایپوکلسیمیا (Hypocalcemia)، هایپومګنیزیمیا (Hypomagnesimia)، هایپوفاسفاتیمیا (Hypophosphatemia)، هایپوکلیمیا (Hypokalaemia)، او پړسوب په ګډون ۳۰ نوعې لست کړي دي. توکسیمیا (Toxaemia) چې د ماستایتس (Mastitis)، میتریتس (Metritis)، پیروتونیتس (Periotrnitis)، اسپریشن نومونیك (Aspiration pneumonic) د رحم ریتي کولم (Reticulum)، ابومازوم (Abomasum) د شکیدلو او تروماتیك پیریکاردیتس (Trumatic pericarditis) نور صدمات لکه د حوصلې (Pelvis) ماتیدل، سکروم (Sacrum) بې ځایه کیدل، د ابچویتر (Obturator) یا شیاتیك (Sciatic) عصب فلج، د غونډې هیپ (Hip) بې ځایه کیدل او د عضلاتو څیرې کیدل او نور شامل دي.

تقریباً د دونر (Downer) ټولې نیمایي غواګانې په څلورو ساعتونو کې پاځیږي. نتیجه یې د لسو ورځو څخه وروسته ښه نه ده لیکن د غواو ځینې واقعات لیدل شوي چې د دوه یا درې اونیو یا حتی یوه میاشت وروسته هم په خپلو پښو ودریدلې دي.

## علایم کمبود پروتین در مرغها

ترجمه: محمد هارون نثار

کمبود یك مقدار کمی پروتین در غذای مرغها باعث زیاد شدن اشتهای مرغها گردیده که در نتیجه مصرف غذائی مرغها بالا می رود. همچنان کمبود خفیف ان باعث کم شدن تولید تخم و خورد شدن جسامت تخمها میشود. کمبود بیشتر پروتین در غذای مرغهای در حال رشد باعث بطی شدن نمو، به تعویق افتیدن موعد پر کشی، بی اشتهائی، پرخوری و خود خوری (کینبالیزم Canabolism) میگردد.

کمبود بسیار زیاد پروتین در مرغهای تخمی باعث بی اشتهائی و پائین امدن شدید تولید تخم میگردد. در مرغهائیکه روی بستر عمیق نگهداری میشوند، بستر عاری از پرهای ریختگی می باشد. زیرا مرغها پرهای ریخته گی را می خورند.



# استعمال پوست مار منحیث ادویه

از پوست مار در تداوی امراض روماتیزمی، گلو دردی، انقباضات عضلی، سیاه زخم و کمر دردی استفاده بعمل میاید.
نظر به تحقیقاتیکه توسط خالد جاوید بیگ (دانشمند موزیم ملی تاریخ پاکستان) صورت گرفته است، میگویند که مردمان قدیم معتقد بوده اند که استعمال جلد مار باعث طولانی شدن عمر، برقرار ساختن ذخیره حرارت وجود در اشخاص مریض، نیرو و قوت بخشیدن به مریض، متضمن قدرت جنسی و رفع تسممات میگردید.
نظر به عنعنات فولکور جرمنها کسب علوم طبی را میتوان از طریق خوردن جوشانده گوشت مار سفید امکان پذیر ساخت. با وصف اینکه این موهومات باثر پیشرفت علوم معاصر از بین رفته اند ولی با انهم عقیده مندانی در این باره وجود دارند. از پوست مار اکثرا جهت پوشاك استفاده شده، ولی اگر پوست مار در واین جوش داده شود جهت تداوی گوش دردی و دردهای قولنج بکار می روند.
طبیعت شناسان قدیم عقیده داشتند که پوست مار باعث اسانی زایمان می گردد. در مشاهدات مارکوپولو امده است که پوست مار در هند به قیمت گزافی خرید و فروش گردیده و با دادن مقدار بسیار کم ان به زنان حامله، به سرعت زایمان شان افزوده می شده است. همچنان از پوست مار جهت سقط ها نیز استفاده می شده است.
در اروپا دیدن مار زنده را شگوم بدی بخاطر سقط زن حامله می پنداشتند. مردم عقیده داشتند که خوردن گوشت مار افعی باعث شادابی جلد و دفع مضرات وجود میگردد. به همین علت اکثرا زن های ایتالوی در غذای شان گوشت مار افعی را شامل می نمودند. زنان قبایلی میکسیکوئی بخاطر پرشکوه جلوه نمودن و داشتن موهای دراز و بلند، موهای شانرا باروغن مار زنگی چرب می نمودند.
طبابت و معالجه از طریق مار از سالها در کشور های اسیائی و دیگر نقاط جهان رواج داشته است. چینی ها گوشت مار بووا را بخاطر نجات از مرض سل، و گوشت مار های ابی را بخاطر معالجه تعداد کثیری از امراض به شمول ملاریا و جزام استفاده می نمودند. گوشت مار بووا در قرن ۱۹ جهت تداوی بسیاری از امراض در بنگال بکار رفته. همچنان در اسیا و اروپا پوست مار را بخاطر تداوی گزیده گی سگ دیوانه موثر میدانستند. زهر مار به طریقه های مختلفه یی جهت تداوی والتیام زخمها استفاده می شده است.
پیروان طب یونانی عقیده دارند که زهر مار در تداوی انعده از امراضی موثر می باشد که علایم انها مشابه به علایم شخص مار گزیده گی باشد.
تا سال ۱۹۴۳ چنین ادعا می شد که پوست مار در تداوی درد های روماتیزمی مفاصل خیلی موثر می باشد. زهر مار افعی روزیل (Russel) منحیث ماده لخته کننده خون در تداوی واقعات خونریزی ها موثر می باشد.

*ترجمه: محمد هارون نثار*

## شیوع بیماری Avian Influenza (انفلونزای طیور) در افغانستان

*داکتر داد محمد امیر*

در طول سال جاری یکتعداد از فارم داران بعضی از ولایات از شیوع و تلفات مریضی شبه مرغ مرگی (نیوکاستلNewcastle Disease) در بین مرغداری های شان با وجود تدابیر وقایوی قبلی علیه مرض نیوکاستل شکایت داشتند. انها ضمن راپور مریضی فوق يك مقدار مواد مریضی را از مرغ های مصاب و تلف شده (اجساد تلف شده) به اسلام اباد جهت تشخیص موثق مرض ارسال داشتند. مواد متذکره به انستیتوت ریسرچ و لابراتوار تشخیص بیماری های طیور در اسلام اباد بمنظور تشخیص عامل بیماری راجع شد. در نتیجه ویروس انفلونزا طیور Avian Influenza Virus (AIV) و ویروس مرض نیوکاستل Newcastle Disease Virus (NDV) در نمونه های ارسالی اتحادیه مرغداری جلال اباد، کابل و فیل مرغ های فارم جدید تاسیس ولسوالی شینډنډ هرات تجرید شد که دلالت به موجودیت بیماری انفلونزا (AIV) را در افغانستان میکند شرح مفصل ان در جدول زیر ارایه گردیده است:

| مرجع راپور و ارسال مواد مریضی | تاریخ | تعداد مرغهای مصاب شده | تعداد مرغهای تلف شده | نوع نمونه | امراض تحت اشتباه | نتیجه لابراتواری |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شیندند فراه | ۲۵-۳-۱۹۹۹ | ۳۹ | ۱۹ | خون و اعضای داخلی | Fowl thyphoid, Pullorum & Newcastle Disease Virus | AIV(+Ve) |
| جلال آباد | ۲۳-۸-۱۹۹۹ | ۳۵۰ | ۲۴ | لاشه کامل مرغ | Newcastle Disease Virus Avian Influenza Virus | AIV(+Ve) ND(+V) |
| جلال آباد | ۶-۱۰-۱۹۹۹ | ۸۰ | ۷۵ | لاشه کامل مرغ | Infectious Bronchitis Virus Newcastle Disease Virus Avian Influenza Virus Coccidiosis | ND(+Ve) Coccidiosis Round worm deficiency |
| کابل | ۷-۱۰-۱۹۹۹ | ۱۱۳۰ | ۷۵۰ | لاشه کامل مرغ | Infectious Bronchitis Virus Newcastle Disease Virus Avian Influenza Virus Coccidiosis | N.D.V(+Ve) |
| کابل | ۷-۱۰-۱۹۹۹ | بیشتر از ۱۰،۰۰۰ در طی یك سال | ۳۰۰۰ در طول سال | لاشه کامل مرغ | Infectious Bronchitis Virus Newcastle Disease Virus Avian Influenza Virus Coccidiosis | N.D.V+Ve |

در اکثر موارد مریضی نیوکاستل همراه با انفلونزا طیور یکجا و بطور مختلط بروز کرده که خود میزان تلفات را در فارم ها بالابرده و یکنوع عدم اطمنان را در مورد واکسین های استفاده شده علیه مرض نیوکاسل در نزد عده از فارم داران بمیان اورده است. بطور مثال: تلفات بیش از ۱۴۰۰۰ قطعه مرغ در اتحادیه های مرغداری شهر کابل و جلال اباد در عقرب سال گذشته را میتوان از چنین شکل مختلط بیماری های طیور تلقی کرد. بناء بر فارمداران لازم است تا از موضوع مطلع بوده و در قرانطین نمودن فارم های خود کوشش به خرچ دهند. زیرا در حال حاضر واکسین انفلونزا طیور در اختیار نمی باشد.

## د غواګانو په بدن کې د مګنيزيمو (Mg) د کموالي نښې

*ژباړنه: داکتر سيد ګل صافي*

دغه رنځ په مختلفو نومونو لکه لکتيشن تيتاني (Lactation tetany)، هايپومګنيزيما (Hypomagnesaemia)، هايپو مګنيزيميك تيتاني (Hypomagnesaemic tetany)، ګراس ستيګر (Grass Staggers) او ګراس تيتاني (Grass tetany) سره ياديږي.

دا په شخوند وهونکو څارويو کې يو سخت وژونکی رنځ دی چې په ډيرې بيړې سره مخکې له دې چې څاروی د رنځ کومې نښې وښايي له منځه وړي او معمولاً په څاروی په کور يا کرونده کې مړ وويني. دغه رنځ په هغه غواګانو کې زيات ليدل کيږي چې په ښه شنو وښو باندې څرول کيږي (ځکه چې په دې وخت کې له يوې خوا د مګنيزيمو خارجيدل په تشو متيازو کې زياتيږي او له بلې خوا په شنو وښو کې د مګنيزيمو اندازه کمه ده). هغه غواګانې چې شيدې ورکوي د دې رنځ په مقابل کې زياتې حساسې دي ځکه چې يوه زياته اندازه د مګنيزيم د څاروی د بدن څخه په شيدو کې هم خارجيږي.

د تشخيص يوازينۍ لياره د څاروي په بدن کې د مګنيزيمو د اندازې معلومول دي چې د رنځ په وخت کې د مګنيزيم نورماله اندازه ۲,۵ ملي ګرامه په يو ديسي ليتر وينه کې ۰,۵ ملي ګرامو ته راکښته کيږي.

په غواګانو کې د بدن د مګنيزيمو د کموالي په وخت کې کلسيم هم د نورمال حالت څخه راکمږي چې دا د کلينيکي نښو په ښودلو کې مهم رول لري ځکه چې په لږ وخت کې د کلسيمو کموالی د مګنيزيمو د کموالي سره يو ځای د څاروي د عضلاتو د تشنج د رامنځ ته کيدو سبب کيږي. حتی د لنډې مودې لپاره ولړه، د

څاروي انتقال له يو ځای څخه بل ځای ته، په خوراکه کی ناڅاپي تغير، بد هضمي او داسی نور په لړ وخت کی د څاروي د بدن د کلسيمو اندازه راکموي.

په عام ډول سره دا رنځ زيات نه واقع کيږي او د يوی ګلی څخه و بلی ګلی ته، څړ ځای او حتی په يوه ګله کی د څارويو تر منځ يی واقع کيدل توپير لري. د مصابيت نورماله اندازه يی ۲ فيصده اټکل شوی ده حتی په بعضی ګلو کی تر ۲۰ فيصدو پوری رسيږي. د مرګ اندازه په رنځ اخته څارويو کی زياته ده اما په اقتصادي لحاظ يی تاوان له هايپو کلسيميا (Hypocalcaemia) څخه زيات نه دی سره له دې چی هايپو کلسيميا (Hypocalcaemia) زيات واقع کيږي او ډير لږ څاروي که په صحيح ډول سره تداوي نه شي له منځه ځي.

د بدن د مګنيزيمو کموالی د کلسيم په څير د لنګون سره کومه اړيکه نه لري. اما هغه څاروي چی شيدی ورکوي په پوره پيمانې سره د بدن د کلسيمو په موازنی باندی اثر کوي. پرته له دې څخه موسم هم يو مهم عامل دی د مثال په ډول کله چی څاروی د ژمي څخه وروسته د پسرلي په ورځو کی يو دم شين څړ ځای ته وړل کيږي او يا د منې په ورځو کی کله چی څاروی د دوبې په اخيرو ورځو کی په بې کيفيته خوراکه باندی ساتل شوی وي بالخصوص په هغه څړ ځای کی چی د نايتروجن او پوتاشيم کيمياوي سره هم استعمال شوي اوسي ددې رنځ د رامنځ ته کيدو سبب کيږي.

د دې رنځ عامل په شخوند وهونکو څارويو کی کوم چی په څړ ځايونو کی څرول کيږي د بدن د مګنيزيمو کموالی دی. اما هغه څاروي چی په کورونو کی ساتل کيږ ي دانه باب او ښه واښه ورته ورکول کيږي دا رنځ په کی ډير لږ ليدل کيږي.

هغه څاروي چی شيدې ورکوي کافي اندازه اضافه مګنيزيمو ته ضرورت لري او همدا دليل دی چی دا څاروي د دې رنځ سره ډير حساس دي.

د دې رنځ د رامنځ ته کيدو اصلي ميکانيزم په اړوند له يوې خوا په خوراکه کی د مګنيزيمو کموالی دی او له بلی خوا ځينی نور عوامل هم شته کوم چی د څاروي په بدن کی د کولمو له لياری د مګنيزيمو د جذب اندازه راکموي.

هغه غوا چی شيدې ورکوي په ورځ کی ۲۰ ګرامه مګنيزيم ته ضرورت لري تر څو د بدن ضروريات يی وربانديی رفع کړي. اما متاسفانه د کولمو څخه د جذب اندازه فرق کوي په شنو وښو کی د مګنيزيمو اندازه نسبت وچو وښو ته کمه ده او بل مهم فکتور دا دی چی د حيوان په بدن کی د مګنيزيمو د نورمالی اندازی د ساتلو لپاره د کلسيمو په څير د اندوکراين سيستم کوم رول نه لري او يواځی او يواځی د خوراکي د اندازې پوری اړه لري. په عمومي ډول کله چی د څړ ځای په وښو کی د مګنيزيمو اندازه ۲,۰ فيصده څخه راکمه شي نو دا رنځ راښکاره کيږي.

دا لاندينی عوامل د دی رنځ په توليد کی مهم رول لري.

۱. د مګنيزيمو اندازه په شنو وښو کی نسبت وچو وښو او سايلجو ته کمه ده (په خاصه توګه هغه شنه واښه چی نوي ټوکيدلي وي).

۲. د مګنيزيمو اندازه په هغه کرونده يا ځمکه کی چی جودر، غنم او داسی نور ځيزونه په کی کرل کيږي نسبت و هغه ځمکو ته چی شفتل او يا غټی پاڼی لرونکي ځيزونه په کی کرل کيږي کمه ده.

۳. په څړ ځای کی د نايتروجن او پوتاشيم کيمياوي سری شيندل په وښو کی د ځمکی څخه د مګنيزيمو د جذب اندازه راکموي او همدارنګه د دې ډول وښو په خوړلو سره د حيوان د بدن په کولمو کی د مګنيزيمو د جذب اندازه راکميږي.

۴. که چيری د يو څاروي په خوراکه کی د کلسيمو اندازه زياته شي د مګنيزيمو د جذب اندازه راکموي. همدارنګه که چيری په يو څړ ځای کی چونه وشيندل شي نو په څارويو کی د تشنجاتو په توليد کی مرسته کوي.

۵. که چيری په خوراکه کی پروتيني مواد له خپلی اندازی څخه زيات شي نو د څاروي په لړي (رومن) کی د امونيا د زياتيدو سبب کيږي او د مګنيزيمو د جذب اندازه متاثره کوي.

*پاتی په ۱۰ مخ کی*

# له شیدو څخه منځ ته راتلونکي رنځونه

ژباړنه: داکتر محب الله حلیمي

بې شمیره ساري رنځونه لکه بروسلوزس (Brucellosis)، سالمونیلوزیس (Salmonellosis) او کیو تبه (Q.fever) خلکو ته د هغه شیدو له لارې چې پاستوریزه شوې (پوره جوش شوې نه اوسي) نه دي او یا په قسمي ډول سره پاستوریزه شوي (نیمه جوش شوې) وي انتقالیږي.

د ۱۹۵۱ څخه تر ۱۹۸۰ کلونو پورې په انګلستان او والیس کې د ۲۳۳ نوعه انتقالي رنځونو په هکله د ورکړ شوو راپورونو له جملې څخه په سلو کې ۷۷ د بې پاستوریزه شوي او یا د غیرې مکمل پاستوریزه شوو شیدو او د هغه د محصولاتو څخه منځ ته راغلي دي. د ۱۹۸۳ کال د اګست د میاشتې څخه وروسته څه د شیدو پاستوریزشن وجهي چې په اجباري ډول سکاټلند (Scotland) ته معرفي شوې د مخکې درې کلونو په نسبت چې د سالمونیلوزس څوارلس واقعاتو ۱۰۹۰ کسه په رنځ مبتلا کړي و په اتو ۸ واقعاتو کې ۴۶ کسانو ته راپیښ شو.

کمپایلوباکتریا جیجینوم (Compylobacter jejuni) چې په بې پاستوریزه شوو او غیر مکمل پاستوریزه شوو شیدو کې موجود دي په انسانانو کې د کلمو د ۱۳ واقعاتو سبب شوي دي. په ۱۹۸۴ کال کې د همدغه کټ مټ رنځ په خپریدنه کې کله چې د انفکشن پلټنه د یوې ګلې په ۳۴ غواګانو شیدو کې وشوه ۱۸ کسه په رنځ اخته شوي وو. کله چې د شیدو ګرمولو امر شیده خرخوونکو ته په تحمیلي ډول وشو د نورو واقعاتو راپور نه دی ورکړل شوی.

کورینې باکتریوم ایلسرنز (Corynebacterium ulcerns) چې د ستوني د درد د سبب په حیث د یوې ټولنې په یو مریض کې چې خام شیده یې څښلي و تشخیص شوي وو. د رنځ منبع یوه ګله وه چې په هغه کې ۸ غواګانې په دغه ارګانیزم اخته وې.

## زندی کونکی رنځ یا پاستوریلوزس (Pasteurellosis)

ژباړنه: داکتر محمد اکبر شهید

زندی کوونکی رنځ چې هیموراجیک سیپتیسیما (Haemorrhagic Septicemia) په نامه سره هم یادیږي اکثرا په تېټو او هموارو علاقو په شمول د پاکستان او افغانستان کې لیدل کیږي. دا یو ساری رنځ دی او د مړینې اندازه یې ۹۶% ده. معمولا دا رنځ د دوبي د موسمي بارانونو په پیل سره شروع کیږي غواوې او میښې زیاتر په دې رنځ اخته کیږي اما په اوښانو، اوزو، میږو او اسونو کې هم واقع کیږي. کم عمره څاروي په خاص ډول د شپږو میاشتو څخه تر دوه کلونو پورې د دې رنځ په مقابل کې ډیر حساس دي. دغه رنځ د پاستوریلا مولتي سیدا (Pasteurella multicida type) او نورو ډولونو په واسطه کوم چې په عادي ډول د څاروي د تنفسي سیستم په پورتني برخه کې ژوند کوي منځ ته راځي.

خارجي فشارونه، ستړتیا، د خوراکی کموالی او د څارویو انتقال له یوه ځای څخه و بل ځای ته د دې رنځ په واقع کیدو کې مرسته کوي.

د دې رنځ د یوې لنډې مخفي دورې (دوه ورځې او یا له هغې څخه هم کم) په تیریدو سره غواګانې او میښې ستړې ستومانه معلومیږي، په خوراك کې یې لږوالی راځي، لیاړې یې بهیږي او سخته تبه لري.

مکوزا یې په تور سره رنګ سره بدلیږي. د څاروي ژبه په ډیرو وختونو کې پړسیدلې او د خولې څخه ځړیږي.

د ستوني لاندې وروستي برخه کې ګرم سخت پړسوب رابرسیره کیږي. مرګ په ناڅاپي ډول سره منځ ته راځي او معمولا وجه یې د سا وښکلو ستونزه ده چې د څو ساعتونو څخه نیولې بیا تر ۳-۴ ورځو په موده کې واقع کیږي او د مړینې اندازه یې خورا زیاته ده. په هغه وختونو کې چې رنځ په حاد ډول سره نه اوسي سینه بغل او نس ناستي هم پکې لیدل کیږي اما کله چې رنځ په حاد ډول واقع شي بیا نو د انترکس (Anthrax) او براکسي (Braxy) سره غلطیږي.

د رنځ په لومړیو وختونو کی د پراخه اثر لرونکو انتي بیوتیکو استعمال د فایدی څخه خالي نه دی. دارنګه څارویو ته کله کله درمل ورکول کیږي اما درمل په هغه صورت کی اغیزمن دی چی د رنځ په لومړی مرحله کی تطبیق شي سلفانامايد او انتی بیوتیك یی انتخابی درمل دي د رنځ د مخنیوی ښه تګ لیاره د وخت څخه د مخه د څارویو واکسین کول دي.

## په افغانستان کی د غواګانو نسل او حاصلاتو ته وده ورکول

د لومړي مخ پاتي

او په یو څو انتخابي ځایونو کی شروع شو چی په لاندی ډول سره دی:

الف. د وښو کرنه او زیاتوالی.

ب. د نسل اصلاح د مصنوعی القاح په ذریعه.

ت. د خوراك او ساتنی په برخه کی د ګټورو فني معلوماتو برابرونه.

ث. د غواګانو د صحت او سلامتیا په خاطر د وترنری د کلینکونو تاسیسول چی د ملګرو ملتونو د انکشافی پروګرام او د انګلستان د بین المللي مرستو د دیپارتمنت کوم چی د مخ په ودی کارونو لپاره کار کوي تمویل او مخ په وړاندی ځي چی دغه کارونه اوس د جلال اباد، کابل او قندهار په مختلفو ولسوالیو کی فعال دي.

## د وښو د تولیدولو پروګرام:

د دی پروګرام څخه مقصد دا دی چی د با کیفیته وښو اندازه د نورو اصلاح شوو تخمونو په رواجولو سره زیاته کړو. د نمونی په توګه لکه مصري شفتلي او رشقی نوی نوعی مالدارانو ته ورکړل شوی او ورسره په څنګ کی ځینی نوری نوعی د وښو لکه ږدن، جودر او باجری مالدارانو ته ورښودل شوی او رواج یی پیدا کړی. د ۱۹۹۸- ۱۹۹۹ کال د ژمی په پروګرام کی د دغه وښو نمونی په ۴۲ قریو د ۱۲ ولسوالیو کی ۱۹۴ مالدارانو ته ورښودل شوي دي. په دغه امتحانی پروګرام کی د تازه رشقی اندازه په قندهار کی په وسطي ډول سره ۹۷۰۵ میتریك ټنه او په جلال اباد کی ۱۱۰۱ متریك ټنو ته په یو هکتار ځمکه کی رسیدلو. نوی نوعی د رشقی چی د اګاتي (Agati) په نامه سره یادیږي او نوی په مالدارانو کی د پروګرام په واسطه معرفي شوی د هغی د حاصلاتو اندازه نسبت پخوانیو نوعو ته ۳۰ فیصده زیاته ده. د ځینی وجوهاتو په اساس د دی تخمونو د واردولو په اړوند ۱۹۹۹ کال په مني



د مني په موسم کی د مټ (Mott) اصلاح شوي وابښه (ننګرهار)

کی پریکړه وشوه چی دا تخمونه په داخل د افغانستان کی زیات او دی پروګرام ته دی وده ورکړل شي تر څو په خپلو پښو ودریږو. د جودرو د پیداوار اندازه په یوه هکتار ځمکه کی د ۶۰ - ۷۰ متریك ټنو پوری رسیدله چی دا رقم د مالدارانو د قناعت وړ اندازه وه او د هغوی عکس العمل فوق العاده مثبت و. د ننګرهار مالداران نسبت د قندهار مالدارانو ته ډیر خوشحاله و.

د جودرو څخه د وښو په څیر د استفادی لپاره به مختلف ازمايښتي پلټنی او مالدارانو ته یی ښودنه جاري وساتل شي. د نوي وارد شوي رشقی نتیجه نسبت پخوانی وطني تخم ته ۵۰٪ زیاته وه او د پروګرام د لاښه والي په خاطر مختلفی نوری نوعی د ازمایش لاندی دي.

د ننګرهار، کابل، قندهار او فراه په ولایتونو کی ۲۳۳ مالدارانو ته د ږدنو او باجرو ازمايښتي کرنی تر سره شوی اما د اوبو د نشت والي په خاطر لازمه

نتيجه تر لاسه نه شوه خو په هغه سيمو کې چې اوبه موجودې وې د مالدارانو د رضايت وړ نتيجه يې ورکړه.

## د غواګانو د مصنوعي القاح پروګرام:

د غواګانو د مصنوعي القاح کولو لپاره دا پروګرامونه طرح او په کابل، جلال اباد او قندهار کې پلې کړل شول. د ننګرهار په ولايت کې براون سويس (Brown Swiss) او فريزين (Friesian) د نسلونو منجمد شوي سمين چې له باندې څخه وارد شوي و استعمال کړل شول. څلور کسه د دې فن کارکوونکو ته د ضرورت وړ سامان الات او موتر سايکلونه ورکړ شو چې د سرخ رود، جلال اباد په ښار، د خيوې او بټي کوټ په ولسواليو کې کار کوي. د ۱۹۹۷ کال د اکتوبر د مياشتې څخه د ۱۹۹۹ کال د جولای تر مياشتې پورې يې ۱۶۵۱ غواګانې په مصنوعي ډول سره القاح کړې. دوه کسه نور د دې فن خاوندان د غني خيلو په ولسوالۍ کې د ملګرو ملتونو د مخدره موادو د کنترول د پروګرام لاندې په کار اچول شوي او د ضرورت وړ مرسته وخت په وخت ورسره جاري ده. څرنګه چې د مايع نايتروجنو برابرول (کوم چې د منجمد شوو سيمنو د ساتلو لپاره ضروري دي) کابل او قندهار ته سخت و نو د فريزن (Friesian) د نسل د تازه سيمنو څخه کار واخيستل شو.

د کابل د سيمنو د جمع کولو او برابرولو مرکز بيا فعال شو ضروري سامانونه او کيمياوي مواد ورته ورکړل شو او ۹ تنه د فن خاوندانو ته تربيوي کورسونه تر سره شو چې اوس د کابل د چارده، ده سبز، بګرامي او چاراسياب په ولسواليو کې په کار بوخت دي. د ۱۹۹۷ کال د اکتوبر له مياشتې څخه د ۱۹۹۹ کال د جولای تر مياشتې پورې يې ۱۸۸۱ غواوې په مصنوعي ډول سره القاح کړيدي.

په قندهار کې د سيمنو د توليد او جمع کولو مرکز د ډنډ د ولسوالۍ د وترنرۍ د صحي کتنځي په انګړ کې پرانستل شوی دی. د قندهار فني پرسونل په کابل کې د وترنرۍ په تربيوي مرکز کې (د ۱۹۹۹ کال له جنوري څخه تر مارچ پورې) د درې مياشتو مودې لپاره له سره نوې وروزل شول.

پنځه کسه لابراتواري تکنيشيان چې د سيمنو د جمع کولو، برابرولو او توزيع کولو سره سروکار درلود هم د روزنې لاندې ونيول شول. په مجموعي ډول سره د ۱۹۹۹ کال د جولای څخه د سپتمبر تر مياشتې پورې ۵۱۱ غواوې په مصنوعي ډول سره القاح کړې دي. د مصنوعي القاح فني مامورين د وترنرۍ د صحي کتنځيو د داکترانو سره نږدې اړيکې لري او د هغوی د نظر لاندې په مربوطه سيمو کې په کار بوخت دي. د مصنوعي القاح لپاره د فراه، جلال اباد او کابل د هغه سيمو څخه چې دغه خدمتونه ورته نه رسيږي زياته غوښتنه کيږي اما عمده ستونزې لکه د فني پرسونل نشت والی، د ښه او با کيفيته غوايانو کمبود او يا نشتوالی له يوه پلوه او مالي مرستو محدودوالی له بله پلوه په اوس وخت کې دغه غوښتنو ته ځواب نه شي ويلی.

## ښاري برخو ته د شيدو د رسولو پروګرام:

دوه پروژې په دې خاطر په قندهار او کابل کې جوړې او مرستې ورسره وشوې. هر سهار د مالدار څخه په کليوالي سيمو کې شيدې راجمع او



بیا یی نږدی مرکز ته انتقالوي چی د. یو لړ مرحلو تر سره کولو وروسته یی بیا د کابل او قندهار خلکو ته د خرڅلاو په خاطر وړاندی کوي. په دی اړوند دری مرکزونه په قندهار کی جوړ شوي دي چی د ۱۵۰ څخه زیاتو مالدارانو څخه شیدی راجمع کوي. همدارنګه دا مرکزونه په کابل کی جوړ شوي دي چی له ۳۰۰ څخه زیاتو مالدارانو څخه شیدی را جمع کوي. د ۱۹۹۹ کال د دوبي په موسم کی په قندهار کی ۱۵۰۰ لیتره او په کابل کی ۱۰۰۰ لیتره شیدی په ورځ کی راټولیدی. د شیدو د کیفیت د معلومولو لپاره په کلیوالي سطحه کلات ان بایلنګ تست (Clot on boiling test) لکتومیتر (Lactometer) او په کابل کی د دی څخه برسیره د ګربر بټرفت ټیسټ (Gerber butter fat test) ترسره کیږي د شیدو د پروسس کولو په خاطر دوه کوچني واحدونو ته ضروري سامانونه او نور ضروریات برابر شوي دي په اوس وخت کی د دوی اصلي محصول شیدی، ماسته، شرومبی او په کمه اندازه کوچ، پنیر او ځینی خوږو خوړو (تنها په قندهار کی) جوړول دي. له شیدو څخه د نورو محصولاتو د جوړولو تناسب په قندهار کی د راجمع شوو شیدو ۶۰ فیصده او په کابل کی ۲۰ فیصده تشکیلوي. د شیدو او د شیدو د محصولاتو د خرڅلاو لپاره په قندهار کی ۸ او په کابل کی ۷ هټی ګانی او د یو سیار مني بوس په واسطه صورت نیسي.

د کلیوالي سیمو څخه د شیدو راجمع کول د دپروسس کولو مرکز ته په قندهار کی د موټر سایکلونو او په کابل کی د بایسیکل په واسطه تر سره کیدل. د دی لپاره چی د شیدو راجمع کولو مرحله مخ په چټکی سره صورت ونیسي دواړو مرکزونو ته دوه دانی پیک اپ (Pick up truck) ټرکونه ورکړل شوي دي. په اینده کی داسی په نظر کی نیول شوی دی چی راتلونکی کی به زیات شمیر مالدارانو څخه شیدی راجمع او همدارنګه نورو فرعي محصولاتو جوړولو ته وده ورکړو.

## د غواګانو د ښی ساتنی او تغذیی پروګرام:

۸ کسه د دی فن کارپوهان په څلورو مرکزونو (قندهار، کابل، ننګرهار او بامیانو) کی د ښی خوراکي په برابرولو او ښی ساتنی کی ګټوری مشوری وړاندی کوي په کابل او قندهار کی مالداران د شیدو په راجمع کولو او همدارنګه په تربیوي پروګرامونو کی برخه لري د دی څخه علاوه د ۷ ولسوالیو په ۱۸ کلیو کی ۹۳ مالداران د دی تربیوي کورسونو لاندی ګټوری مشوری د دی موضوع په اړوند تر لاسه کوي.

یو مقدار مالي مرسته دی دواړو پروژو ته ورکړ شوی وه تر څو د دی مالدارانو د څارویو د خوراك او ښی ساتنی په اړوند په مصرف ورسیږي چی د دی پروګرام عمده موضوع ګانی د ښی سرپنا جوړول، د اوبو د څښلو لپاره د مناسبو لیارو چارو برابرول، د منرال او نورو دانه بابو د خوراکی د رواجولو څخه عبارت و. پنځه میتریك ټنه د منرال پوډر په نښه شوو سیمو کی مالدارانو ته ورکړل شول. د دی لپاره چی د ښو وښو خوراك په صحیح او مناسبه طریقه مالدارانو ته په ګوته کړی شي تقریبا ۹۰ عراده د وښو د قطع کولو او میده کولو ماشینونه په مالدارانو باندی وویشل شو. د دی کارونو نتیجی تر کلکی څارنی لاندی ونیول شوی او په مجموع کی نتیجه یی مثبته ده.

## صحي خدمتونه:

کوشش وشو چی د دغه شیدو د راجمع کولو په پروګرام کی د ولسوالیو د وترنری د صحي مرکزونو ونډه کوټلی کړای شي. په لومړی مرحله کی به د دی ټولو مالدارانو غواګانی د دی ولسوالیو د کلینیکونو د داکترانو له خوا معاینه شي چی په دی کی د حاملګی د معلومولو، د وینی او غایطه موادو راجمع کول د لابراتواري ازموینو په خاطر هم شاملي وي. د لابراتواری معایناتو نتیجی به مربوطه مالدار ته وړاندی کیږي او د هغی د مخنیوي لپاره به لازم اقدام باندی لاس پوری کوي. په لومړی مرحله کی به د لابراتواري معایناتو اجرا کول مفت وي او که په اینده کی ورته ضرورت وي نو بیا به د هر ازموینی په مقابل کی مناسبه بیه ورکوي.

## د غواګانو په بدن کې د مګنيزيمو د کموالي نښې

د ۵ مخ پاتې

۶. زيات داسې مواد شته چې د مګنيزيم سره نوي مرکبات لکه کيتوبوتريك اسيد (Ketobutyric acid)، ستريت (Citrate) او ترانس اکونيتك اسيد (Transaconitic acid) جوړوي.

په اکثرو وختونو کې رنځ په دومره چټکۍ سره منځ ته راځي چې اصلا کلينيکي نښې د مالدار په نظر نه راځي تر څو يې د تداوي او علاج په هکله لازم اقدام وکړي. په کوم ځاى کې چې غوا فلج شوه هماغلته مري. که چيرې په غور سره وکتل شي چې غوا په څړ ځاى کې پرته له کوم غير نورمال حالت څخه مړه پرته وي نو دا رنځ په ګوته کوي. رنځور څاروى هميشه په څلورو پښو ټوپ وهي، په قهر اوسي او بالاخره بې هوشه کيږي. کله څاروى د لږې مودې لپاره ښه شي خو بيا په دايمي او غير قابل علاج ډول سره بې هوشه او له منځه ځي. کله کله مزمن حالتونه هم ليدل کيږي چې په دې صورت کې د غوا حالت خراب وي، خوراك نه شي کولاى او ډيره عصبي او قهرجنه معلوميږي. د ورنږدې کيدو، د يله کولو او تړلو په وخت يې د قهر اندازه زياته او سخته وي چې دا حالت تر ډيرو ورځو پورې دوام کوي تر څو د بې هوشۍ حالت ته ورسيږي.

کله کله تولو رمه دارنګه بدسلوکه وي خو بالاخره صرف يو څو په کښې د رنځ کلينيکې نښې له ځانه ښايي او له مينځه ځي او پاتې نور يې په غير له کومې حادثې ښودلو څخه ښه کيږي.

په حاده مرحله کې نورې نښې لکه د بدن د تودوخې د درجې ټيټوالى کوم چې د عضلاتو د سختو تقلصاتو او تشنج په نتيجه کې منځ ته راځي هم ليدل کيږي. د زړه ضربان غير منظم او دومره قوي وي چې له ليرې فاصلې څخه اوريدل کيږي.

د څاروي په بدن کې د مګنيزيمو کموالى کله کله د کلسيمو د کموالي پارچورينټ پاريسس (Parturent paresis) په نتيجه کې معمولاً مني په موسم کې کله چې د يوې رمې ټول څاروي د مګنيزيمو په کموالي اخته او مخکې د لنګون څخه د هيجاني مرحلې ته ورسيږي هم منځ ته راځي.

عضلـــي تشـــنجات او د څاروي حساسيت د لنګون سره ملګرى وي کوم چې د پارچورينټ پاريسس د عمده نښو لکه د حيوان سترتيا او شل والى برسيره هم موجود اوسي.

تشخيص معمولاً په کلينيکي نښو باندې کيداى شي اما د څاروي د بدن په وينه کې د مګنيزيمو او د کلسيمو ازموينه قطعي تشخيص کوي.

د دې حالت مخنيوى څارويو ته د مګنيزيمو په ورکولو سره کيداى شي. د دې کار تر سره کول په خوله اسان دى اما عملي کول يې ګران کار دى. په عمومي ډول سره د دې کار د مخنيوي په خاطر هغه خوراکه چې د مګنيزيمو اندازه په کې زياته وي د منى په اخير او د پسرلي په شروع کې کله چې څاروى شين څړ ځاى ته ځي ورکول کيږي. په ورځ کې ۶۰ ګرامه مګنيزيم اکسايد (MgO) د خولې له ليارې د دې حالت مخنيوى کولاى شي اما د دې مرکب د جذب اندازه د قناعت وړ نه ده او کېداى شي چې په ټولو وختونو کې ښه نتيجه ورنه کړي.

که چيرې زياته اندازه يعنې ۲۰۰ ګرامه په ورځ کې ورکړ شي د کلسيمو د جذب مخه نيسي او د استعمال اجازه يې نشته.

مګنيزيم اکسايد (MgO) کولاى شو چې د محلول په شکل د خولې له ليارې څاروي ته ورکړو اما ښه به دا وي چې د ضرورت وړ اندازه په نوره خوراکه کې ورګډه او څارويو ته يې ورکړو. د مولاسس سره يو ځاى ورکول يې ښه نتيجه ورکړې ده.

په اوبو کې قابل د حل مالګه لکه مګنيزيم اسيتيت (Magnesium acetate) د مولاسس د نورو موادو سره يو ځاى کړى حيوان يې په ښه شوق سره خوري.

که چيرې د څړ ځاى په وښو باندې په يو هکتار ځمکه کې ۱۲۵ کيلو ګرامه مګنيزيم اکسايد (MgO) وشيندو نتيجه يې بده نه ده اما صرف د لنډې مودې لپاره به موثر وي ځکه چې د باران د اوريدو پورې اړه لري که باران ژر وشو نو دا دوره به هم ژر له منځه ويسي.

که چيرې په زياته پيمانې سره يعنې ۱۱۲۵ کيلو ګرامه مګنيزيم اکسايد (MgO) پر يوه هکتار ځمکه باندې وپاشل شي اغيزه به يې تر درى کلونو پورې پاتې شي، اما دا قيمته تماميږي. صرف دسخت ضرورت په وخت کې بايد يوه اندازه کرونده او يا څړ ځاى باندې دغه پورتنۍ ذکر شوې اندازه استعمال شي.

ځینې ګولۍ ګانې "Bullets" جوړې شوي دي چې په هغې کې مګنیزیم موجود دي. څرنګه چې دا ګولۍ د حیوان په لړي (Ruman) کې په قراره قراره حل کیږي نو هغه اندازه مګنیزیم چې له دې څخه خارجیږي د حیوان ورځنې ضرورت نه پوره کوي اما بیا هم د ضرورت په وخت کې له فایدې څخه خالي نه دی.

ځینې نورو لاندینیو عواملو ته چې د رنځ په مخنیوي کې تاثیر لري باید هم ځیر شو:

۱. که چیرې په یوه کرونده او یا څر ځای کې د پوتاشیم کیمیاوي سرې استعمال راکم کړو نو تر ډیره حده پورې د دې رنځ په مخنیوي کې مرسته کوي.

۲. د ځارویو څرول په هغه کرونده کې چې د اوږدې مودې لپاره په کې د لیګوم د کورنې کښتونه لکه شفتل نه دي کرل شوي د رنځ د راپیدا کیدو ویره ورسره شته. د امکان په صورت کې د څر ځای او یا کښت څخه د زهرجنو بوټو او وښو له منځه وړل د فایدې څخه خالي نه دي.

۳. د ځارویو صحت او ساتنې ته مناسبه پاملرنه. که چیرې ځارویو ته مناسب واښه برابر او یا ښه څر ځای کې وڅرول شي نو د هاضمې د جهاز سیستم به یې صحتمند او پوره اندازه مګنیزیم به جذب شي. که چیرې ځاروي په داسې څر ځای کې څرول شوي وي چې د وښو کیفیت یې د قناعت وړ نه وي او تږوله ګله یا رمه د مګنیزیمو د لږوالي د خطر سره مخامخ وي اما که چیرې په دې وخت کې د نورو خارجي فشارونو مخه ونیول شي نو امکان لري چې دا رنځ واقع نه شي.

۴. د رنځور ځاروي لپاره ژر تر ژره علاج ته ضرورت دی. د مګنیزیم او کلسیمو ګډ محلول په زیاتره درملتونو کې موجود دي. دا محلول باید ډیر په قراره د رګ له لیاري ځاروي ته ورکړی. په هر صورت له هرې لیارې چې ورکړ شي نتیجه یې د قناعت وړ ده اما د دې ویره هم شته چې د ځاروي په وینه کې مګنیزیم د ۲۴ ساعتو په تیریدو سره بیا راکم او په ځاروي کې د کلینیکي نښو رابرسیره کیدل شروع شي.

# مسمومیت با کود یوریا در بزها

*ترجمه: داکتر سیدګل صافی*

طوریکه تغذیه یوریا در ګاوهای شیری مروج است. یوریا را میتوان برای بزها بحیث منبع مواد پروتینی غیر نایتروجن دار تغذیه نمود. زیرا میکروفلورا شکمبه قادر است تا مواد مذکور را در موجودیت انرژی کافی به پروتین تبدیل نماید قسمت اعظم یوریا که به پلازمای خون می رسد (چه از طریق جذب روده ای ویا در جګر تولید شود) دوباره از طریق لعاب دهن در شکمبه به دوران می افتد.

تسمم یوریا وقتی بوجود میاید که مقدار یوریا از ۳۰ تا به ۵۰ ګرام فی ۱۰۰ کیلو ګرام وزن بدن در جیره یك وقته بحیوانات نشخوار کننده که ګرسنه و یا اینکه به یوریا قبلا عادت نداشته باشند داده شود. میزان مسمومیت زمانی بلند میرود که جګر بتواند یك مقدار زیاد امونیا را دوباره به یوریا تبدیل کند. زیرا امونیا مانع دوران ستریت (Citrate cycle) میشود. مخلوط نامکمل و نا درست یوریا با مواد غذائی علت اصلی مسمومیت می باشد. مواد غیر پروتینی نایتروجن دار زمانی مضر است که حیوان از مواد فایبری (مواد خبشی) که فاقد کاربوهایدریت های قابل هضم باشد تغذیه شود. مسمومیت در نشخوار کننده های کوچك بشکل تیپیك در حدود یك ساعت بعد از خوردن یوریا واقع میشود و مرګ بعد از ګذشت چندین ساعت با ظهور علایم شخی در عضلات و جلد، افرازات لعاب دهن، تکرار دفعات ادرار و مدفوع، عدم توازن، مشکلات تنفسی، سر و صدای بلند، دم کردن و علایم شخی بوقوع می پیوند. معمولا نه بلکه بعضی اوقات pH مایع شکمبه تا ۷,۵ بلند میرود.

بهترین ادویه انتی دوت (Antidot) ان سرکه (Vinegar) میباشد که به مقدار ۰,۵ - ۱ لیتر از طریق سند مری داده میشود تا pH شکمبه را پائین بیاورد. در صورتیکه بز در حالت شخی باشد. جراحی فوری جهت خالی نمودن محتویات شکمبه بحیث یګانه راهی که حیوان را شاید بتواند از مرګ نجات دهد توصیه میګردد.

# هغه حالتونه چی په اوزو کی ناڅاپي مړینه منځ ته راوړي

ژباړنه: داکتر محب الله حلیمي

| سببونه یا وجهی | په څاروي کی د رنځ نښې په هر عمر کی چی وي |
|---|---|
| زخمي کیدنه (Trauma) | د پوستکي لاندی وینه بهیدنه، مات شوی هډوکی، د داخلي غړو څیری کیدل. که چیرته په مړه اوزه کی سترګی نه وي د مړینی څخه وروسته د جسد خرابوالی د مرغانو په واسطه احتمال لري. |
| د فشار سره مخامخ کیدنه | د سري هوا د فشار په واسطه چی د خریلو څخه وروسته د باران او باد سره یو ځای څاروی مخامخ شوي وي. |
| روښنائي، جنګیدنه، برقي شاك (Shock) | د پوستکي لاندی وینه بهیدنه، د سوزیدنی نښانی معمولا بی له کومو افتونو (Lesions) له موجودیت څخه. |
| مارچیچنه | ځای په ځای په پړسیدلي پوستکي باندی د غاښ چیچنی نښی. |
| عکس العمل (Anaphylaxis) | د پنسلین، انتي توکسین (Tetanus antitoxin)، اوتوجینوس باکترین (Autogenous bacterins) د تطبیق څخه وروسته سمدلاسه مړینه. |
| انترکس (Anthrax) | ډیر غټ شوي توري، غټ شوي لمفاوي غړي ممکن د بدن د طبیعي سوریو څخه د وینی راوتل موجود نه اوسي. |
| د ګلستریدوم (Clostridium) زخم انفکشنونه | کرپیدونکی یا کلوستریدوم شوی (C.chauvoei)، پړسیدلی کلوستریدوم سیپتیکوم (C. septicum) له وجی د نسجونو تغیر چی د خوسا شوي کوچو بوی ورکوي، د کلچریا فلورسینت انتي بادی (Fluorosent antibody) په واسطه یی تشخیص قاطع کیږي. |
| انتروکسیمیا (Enterotoxemia) | د زړه د پردی په کڅوړه کی مایع او فایبرین (Fibrin)، ګلوکوزیوریا (Glucosuria)، بختورګي ژر خرابیږي، تازه سلاید یو زیات شمیر ګرام مثبتی میلی ښی. |
| پولیوانسفالوملاسیا (Polioencephalomalacia) | د ود لمف (Wood's lump) لاندی د مغزو د پردی د (Fluorescence) وراندیزکوونکی دي لیکن د رنځ په حاد حالت کی ممکن موجود نه وي. |
| مننجیتیس (Meningities) یا انسفالیتیس (Encephalities) | که چیرته مننج (Meninge) خړ وي د هغه سمیر (سلاید)، د دی لپاره چی نیوتروفیل (Neutrophils) یا باکتریا پیدا کړو د ارزیابی لپاره د شوکي نخاع مایع (CSF) کلچر تر سره کول ضرور دي. |
| تیتانوس Tetanus | پښی غځیدلی، که چیرته کلینکی نښی نه وي ممکن تشخیص نه شي، تاریخچه ممکن وښيی چی دستی ښکرونه یی قطع شوي، د دیستوشیا (dystocia) او نور زخمونه موجود وي د ارګانیزم د ننوتلو لپاره زمینه برابروي. |
| پسودورابیز (Pseudorabies) | فلوریسنت انتی باډی (Fluorescant antibody) ازموینه په جګر یا د مغز په ساقه کی د ویروس تجریدول، د خوړانو سره د تماس یا د ژوندي ویروس په واکسین ککړی شوی پیچکاری تاریخچه. |
| زهري نباتات | د لري محتویات په پوره پاملرنی سره معاینه کړی، وریدي وینه سره روښانه معلومیږي که چیری سیانایډ (Cyanide) زهر پکښی موجود وي، او که چیرته نایتریتس (Nitrates) زهر وي د وینی رنګ توربخن ښکاري. |
| کیمیاوي تسمم د حشره وژونکو او د چینجیو ضد درملو په ګډون | د درملو د بستی لیبل ( Label) او تاریخچه وپلټی. |
| رومنسین توکسیستي (Rumensin toxicity) | د زړه د عضلی هستولوژیکي خرابوالی، په حادو حالتونو کی په واضح ډول نه لیدل کیږي، په خرابه توګه ګډه شوی خوراکه یا کیتل پلیتس (Cattle pellets). |
| د یوریا تسمم | د لري (pH) ۷،۵ ، په خرابه توګه ګډه شوی خوراکه، یخ شوي محصولات یا کیمیاوی سره. |

| | |
|---|---|
| رومن اسیدوزس (Rumen acidosis) | د لري مایع شیده رنګه، pH < ۵،۵، که چیرته سمدلاسه مړینه نورمال حالت ته وګرځي د خولی لاړی لري ته داخلیږي، د مخاط جلا کیدل په ساده ډول سره هم واقع کیږي. |
| پړسیدنه (Bloat) | پړسیدلی مړی، د وروستی پښو پړسیدنه. |
| د ستوني بندیدنه چوک (Choke) | د خوړو د غوټی موجودیت په ستوني کی. |
| د کولمو یو په بل کی ننوتل ولولوس (Volvulus) | د کلمو ننوتی برخه توربخن رنګ لري. |
| د ابومازوم (Abomasum) یا سیکوم (Cecum) تاویدنه | په اوزو کی په ندرت سره لیدل کیږي. |
| هیمانکوسس (Haemonchosis) (په نوي زیږیدلو بچیانو کی نه شته) | عضلات او نور انساج بی رنګه وي، زیات شمیر چینجي په ابومازوم (Abomasum) کی موجود دي یا یی نه لري ممکن د جامی لاندی پړسوب موجود وي. |
| فاسیلیودیوسس (Facioloidosis) او فاسیلوزس (Fasciliosis) | په زیاته پیمانه نکروزس او وینه بهیدنه د چینجیو د حرکت له کبله په جګر کی. کله کله د جګر خیری کیدل کلوستریدوم نووي (Clostridium novyi) انفکشن بلیك ډیزیز (Black disease). |
| انهلیشن نمونیا (Inhalation pneumonia) | په زور سره د وزګوړو تغذیه کول، یا په هر سن وزو ته دوا ورکول درینچنګ (Drenching)، نوتریشنال مسکولر دیستروفي (Nutrionational muscular dystrophy) یا عصبي رنځ د انهلیشن (Inhalation) سبب کیږي. |
| پاستوریلا نمونیا (Pasteurella pneumonia) | د سږو د مخکینی برخی لوبونو سختوالی، سوروالی په بشپړ ډول انهلیشن نمونیا (Inhalation Pneumonia) سره شباهت لري لیکن په لړه اندازه سپتیك (Septic) دی. |
| پولموناری ادیما (Pulmonary Oedema) | د سږو په پارینکما (Parenchyma) کی سور بخبننه اوبیزه مایع، په هوایي لارو کی ځګ، یا د سپي په واسطه د حملی تاریخچه. |
| هارت واتر (Heartwater) | د کنو په واسطه تولیدیدونکی رنځونه، د تبی تاریخچه، عصبي نښی، د سینی د محتویاتو د پړسیدنی پلټنه. |

# نوی څیړنی

## د کافین (Caffeine) خوراک د حافظی لپاره ګټور دی

*ژباړنه: داکتر سیدګل صافی*

پلټونکو دا جوته کړی ده هغه اندازه کافین (Coffeine) چی په کافی او چایو کی موجود دي د مغز موجوده حجری پړسوی او د نوو حجرو د نمو او ودی لپاره ښه زمینه برابروی.

داکتر میناهیم سیګل په ریهوت (Rehovot) کی د ویزمان (Weizmann) په انستیتیوت کی د بي بي سي نماینده ته وویل چی د حجرو د ودی، د حافظی ښه والی او د یادونی قابلیت په زیاتیدو کی ارتباط ورکول کیدای شي چی د وخت څخه د مخه خبره وي خو ده زیاته کړه دا هغه څه دی چی مونږ تری همدارنګه استنباط کوو.

ساینسی علماو په لابراتوار کی د تجربوي موږکانو عصبی حجرو ته وده ورکړه او کافین (Coffeine) یی وربندی علاوه کړل. دوی ولیدل چی هغه عصبی حجری چی د دیندرایتیك سپاینز (Dendritic spines) په نامه سره یادیږي او د مغز د هیپوکمپس (Hypocampus) له برخی څخه اخیستل شوی وي په وده کی یی ۳۳٪ زیاتوالی راغلی و او نوری دارنګه نوی حجری هم جوړی شوی وی چی د ۲-۱ ساعتو وروسته یی نورمال یا عادی حالت د حجرو ځانته غوره کړ.

داکتر سیګل (Segal) وویل مونږه د دی حجرو مطالعی او پلټنی ته ادامه ورکوو ځکه چی ټول خلك په دی عقیده دي چی دغه حجرات د حافظی د ښه والي او ژر یادونی د خاصیتونو سره ارتباط لري نو په عقلی لحاظ ځومره چی حجرات زیات وي نو په هماغه اندازه به د یوه سړي د یادونی قابلیت هم زیات وي.

دا جوته شوه چی سپاینز (Spines) حجری په کافین کی نمو کوي بل قدم به زمونږه دا وي چی معلومه کړو په کوم چی همدا اوس کار روان دی چی ایا دغه حجرات چی لوی او یا اوږده سپاینز (Spines) لری د یادولو په قابلیت کی مهم رول لري او که نه؟

## په نړۍ کې د ټولو نه تیز کارکوونکی کمپیوټر

*ژباړنه: سید نعیم سادات*

IBM او د کلیفورنیا د ملي لابراتوار د انرژي دیپارتمنت لارینس لایمور (Lawrence Livermore) په نړۍ کې تر ټولو تیز کارکوونکی کمپیوټر جوړ کړی دی چې په یوه ثانیه کې ۳,۹ تریلونه محاسبوی اعمال تر سره کوي چې دا تقریبا د نورو متوسطو کمپیوترونو څخه ۱۵۰۰۰ واری تیز کار کوی.

نوی ماشین چې د بلو پاسفیك (Blue Pacific) په نوم یاد شوی دی ۲,۶ تریلیونه بایت (Bytes) لری او د حفظ کولو قدرت یې د یوه متوسط کمپیوتر څخه تقریبا ۸۰،۰۰۰ ځلی زیات دی په کوم کې چې د امریکې د کانګرس د کتابتون ټول کتابونه ځای په ځای کیدای شي.

که چیری یو سړی یو کار په لاسی کالکولیټر (Calculator) یا د حساب په ماشین کوی نو ۶۳۰۰۰ کاله به ورته په کار وي تر څو هغه عمل تر سره کړی اما دغه کمپیوټر دا کار په یوه ثانیه کې کوي.

## تلویزون او متحرك تیلفون د زړه د حملې او سرطان سبب کیدای شي

*ژباړنه: داکتر سیدګل صافی*

د هغه راپور په اساس چې د امریکا د زړه د اتحادیې په غونډه کې په ډالاس (Dallas) کې خپور شو ویل شوی دي چې د تلویزون استعمال او په تیلفون کې خبری کول د دوی په خیال د مهمو عواملو له جملې څخه شمیرل کیږي. فشار او د هغه په مقابل کې د عکس العمل ښودل بل عمده عامل بلل کیږي.

د تلویزون پر مخ د ځینو خاصو پروګرامونو کتنه لکه ورزشي مقابلې او یا نور داسې حساس پروګرامونه په زړه باندی فشار واردوي او زیانمن کوي یې. همدارنګه که چیری یو سړی په ګڼه ګونه کې موټر چلوي چې په نتیجه کې د انسان حوصیله تنګه او په زړه د فشار د راتلو سبب کیږي. کله چې یو انسان د زیات فشار لاندې راځي حوصله له لاسه ورکوي او د زړه فعالیت (د وینې پمپ کیدل) یې هم زیاتیږي. کله چې زړه په قوت سره وینه پمپ کوي په زیات احتمال سره د دې امکان شته چې په داخل د رګونو کې بعضې برخې وشکیږي او شراینو د دیوالونو د بندیدو او تنګیدو سبب شي.

ځینې د زړه متخصصین وایي چې ځینې کارونه لکه د واوری پاکول، باغوانی کول، جاروکول، د چمن د وښو ریبل او داسې نور د زړه د حملې وجې کیدلای شي.

داکتر انتونی ګراهام (Anthony Graham) په تورنتو کې د زړه متخصص او د زړه د رنځونو د اتحادیې ویاند وویل چې هغه کسان چې د زړه د رګونو په رنځ اخته وي د کور کارونه له هغه سره کومه مرسته نه شي کولی ځکه چې دا سخت او ښځې په بې ځایه وخت کې تر سره کوي.

ده وویل چې د سهار په وخت کې د زړه رګونه نسبتا تنګ وي او نو جریان د وینې به هم کم وي او که لږ غونډې سخت کار او یا فشار لاندې یو انسان راشي نو زړه باندې بد اثر کوي. نو هغه کسان چې په ځان پوه دي چې د زړه تکلیف لري نو بهتره ده چې د سهار په وخت کې د هر کار د شروع کولو څخه د مخه خپله دوایي وخوري تر څو د کار د شروع کولو څخه د مخه د درملو اثر په بدن کې پیدا شوی اوسي ځکه چې دوی له هر بل کس څخه د زیات خطر سره مخامخ دي.

د کلفورنیا متحققین وایي چې د خطر څخه ډك کارونه په سهار کې لکه د موټر چلونه، د کور کار لکه د ځمکې پریمینځل، جارو کونه او باغوانی ده. زیاته ګرمی هم بد اثر لري.

د فرانسې نماینده په دې غونډه کې زیاته کړه کله چې د تودوخې درجه د نورمال حالت څخه ۱۰ درجې د سانتي ګراد کښته ولاړه شي نو په زړه باندې د حملې اثر ۱۳ فیصده زیاتیږي. اما میکانیزم یې تر اوسه معلوم نه دی خو تر زیاته حده پوری د چاپیریال د فشارونو پوری ارتباط ورکوي مخکې له دغې پلټنې څخه دا معلومه وه چې ډیره ګرمی او همدارنګه سخته یخني دواړه په زړه د حملې زمینه برابروي.

ده زیاته کړه چې مونږ هغه کسانو ته چې له کور څخه د باندې سخت کارونه تر سره کوي اجازه نه ورکوو چې کله د چاپیریال د تودوخې درجه له

۱۰ سانتي ګراد څخه کښته او يا له ۳۰ درجی سانتي ګراد څخه زياته وي دی خپل کار ته ادامه ورکړي.

د نوو راپورونو په اساس هغه اشعاوی چی د متحرك تيلفون څخه خپريږي د استعمال کونکی په مغز باندی بد اثر کوي حتی کيدای شي چی د الزيمرز (Alzheimer's) رنځ منځ ته راوړي.

په سويډن کی پلټونکو په ګوته کړی ده که چيری حتی تر ۲ دقيقو لپاره د لاسي سيت د انرژی د امواجو سره مخامخ شو نو د بدن د معافيت سيستم ته زيان رسوي چی په حقيقت کی د دی معافيتی سيستم وظيفه دا ده چی د ضرر څخه ډك پروتيني او زهری مواد چی په وينه کی موجود دی پری نږدی چی مغز ته داخل شي. که چيری دا پروتين او يا زهري مواد مغز ته داخل شي نو د مختلفو رنځونو لکه الزيمرز (Alzheimer's) پارکنسن (Parkinson's) او د مختلفو برخو د مغز د وينو د رګونو د بنديدو سبب کيږي.

ډيلی مايل (Daily Mail) د راپور په اساس يوه ډله علماوو د لوند (Lund) په پوهنتون کی مالمو (Malmo) ته نږدی يو ډله د تجربوي موږکانو د مايکروويو (Microwave) د شعاع لاندی کوم چی د متحرك تيلفون د اشعه و سره مشابهت درلود ونيول ترڅو د دوی اثر يا اغيزه يی د مغز په هغه پرده چی وينه له هغی څخه تيريږي مطالعه کړی کله چی دا موږکان تر دوه دقيقو پوری د دی شعاع ګانو لاندی ونيول شول نو د دوی معافيتی سيستم له منځه ولاړ او د مغز انساج هغه پر ويني او زهری موادو ته چی په وينه کی موجود و خلاص شول. پروفيسور ليف سالفورد (Salford) چی د اعصابو داکتر او دغه تجربه يی تر سره کړی ورځپانی ته وويل چی حتی دا پرده په هغه وخت کی هم خلاصه شوه چی د لږ وخت لپاره تر شعاع لاندی راغلی کوم چی د متحرك تيلفون د شعاعو په اندازه وي.

جيورج کارلو (George Carlo) کوم چی د ۲۵ ميلونو امريکايي ډالرو په معادلو پيسو په متحرکو تيلفونونو باندی د پلټنی د رئيس دنده تر سره کوله وويل چی متحرك تيلفونونه د مختلفو رنځونو لکه په مغز کی دانی او الزيمير (Alzheimer) سبب کيږي.

له ډيری مودی را په دی خوا په متحرکو تيلفونو باندی دا تور موجود و چی دا د سرطان، د سر درد، د حافظی له لاسه ورکولو، د وينی د فشار د زياتيدو او د زړه د نورو ستونزو د راپيدا کيدو سبب کيږي.

داکتر کارلو اضافه کړه چی غيری خبيثه دانو خطر د هغه کسانو په مغز کی چی د شپږ کالو راهيسی يی متحرك تيلفون استعمالولو دوه چنده و او همدارنګه د مغز څخه بهر د بدن په نورو غړو باندی تومورونو (دانو) اندازه په هغه کسانو کی چی متحرك تيلفون يی استعمالول دوه چنده وه.

د ده اخرينی کوښښ دا و چی د تيلفون توليدوونکی کمپنی راوغواړي او د تيلفون د سيټ سره يو ځای صحيح معلومات خپلو رانيوونکو ته ورکړي.

---

## کمبود سوديم در گاوها

*ترجمه: داکتر فريدون ازکلينک حيوانی بگرامی*

کمبود سوديم ميتواند از اثر گرفتن کم و يا استخراج زياد از بدن و يا اينکه در نتيجه هر دو حالت بوجود بيايد. اگر کمبود سوديم به حد ناچيز باشد در انصورت هورمون های ادرينال الدوستيرون (Aldosterone) تا حدی زيادی توازن بدن را نگاه ميکند و اگر کمبود سوديم برای مدت طولانی و يا اينکه به شکل حاد در وقت کم واقع شود، توازن بدن را برهم می زند.

در حالت های عادی کمبود خفيف کم سوديم اکثرا به نشان دادن علايم کلينکی منجر نمی شود مگر اينکه بعضی عوامل ديگری از قبيل شير دادن توام به التهاب پستان و يا بدون التهاب، گرمی و عرق زياد که مقدار زيادی سوديم از بدن حيوان خارج ميشود علايم کلينکی بروز کند.

علايم کلينکی را گاو ها وقت از خود نشان ميدهد که مقدار سوديم در علوفه جات خشك چراگاه از ۰,۱ گرام در صد گرام خوراکه خشك تقليل يابد.

وقتيکه گاوها در چراگاه برای اضافه تر از يك ماه چرانده شود و مقدار سوديم در ۱۰۰ گرام علوفه خشك چراگاه از ۰,۱ گرام کمتر شود علايم کلينکی بروز نموده که علايم خطرناك درين مرحله عبارت اند از بين رفتن اشتها، که در مرحله اول علوفه خشك و بعدا حتی دانه باب را نمی خورند. اندازه توليد شير قناعت بخش نبوده،



حیوان بقه طلب نمی شوند و وزن بدن ان کم می شود.
به تعقیب این ها وضع عمومی حیوان بدتر می شود اشتها را از دست میدهد چشم های شان فرورفته و جلد بدن ان خشك و ضخیم بنظر می خورند.
علامه خطرناك و مهم ان عدم موجودیت اشتها و نه خوردن خوراکه ها می باشد. اکثرا گاوها به تلاش یافتن نمك می شوند، یکی دیگر را می لسند و ادرار یك دیگر را می نوشند. اکثرا به خاطر دریافت نمك حیوان با بی صبری و قهر و غصه زمین را چقور می کند تا اگر نمك در ان پیدا کند. و در اکثر گله ها به تعقیب همچو حالت حیوان اب زیاد می خورد و ادرار ان نیز زیاد می شود. امکان دارد که وضع و سلوك همچو حیوانات یك گله و یا رمه تغیر کند تنها نه خوردن خوراك نه بلکه بعد از هر چند دقیقه حیوان ادرار کم رنگ میکند.
علما فکر میکنند که ضیاع سودیم باعث کم شدن قوت مایع خارج حجروی بدن می شود که بالای هایپوتالاموس (Hypothalamus) اثر نموده و افرازات هورمون ضد ادرار را کم میسازد که در نتیجه ان ادرار زیاد می شود و حیوان هر چند دقیقه بعد ادرار کم رنگی میکند.
در مقدار تولید شیر در شروع کمبود رخ میدهد. در شیر مقدار روغن نیز کم می شوند. بر علاوه از این ها در همچو گاوها ولادت قبل از وقت و بند شدن پلاسنتا (Placenta) زیاد واقع می شود. کمبود سودیم با عقامت ارتباط لازمی دارند. اما فکر می شوند که این شاید در نتیجه عوارضات ثانوی که از کمبود سودیم بوجود می اید واقع شود بطور مثال عدم اشتها، خوردن بسیار کم مواد خوراکه، لاغری و ضعیفی حیوان.
تداوی و وقایه کمبود مواد سودیم بسیار اسان است، از لحاظ تیوری اگر در خوراکه حیوان به اندازه ۰٫۵% نمك علاوه گردد ضرورت بدن او را تامین میکند اما از لحاظ عملی که در ساحه مالدار به انها سروکار دارد بهتر خواهد بود که سنگ نمك در اختیار حیوان داده شود تا طبق میل از ان استفاده کنند.
اما درین جا دو مشکل عمده موجود است اول این که اگر به حیوان مقدار زیاد نمك در خوراکه انها داده شود و یا اینکه خود شان از کنده های نمك استفاده کنند امکان دارد که مصرف ان از حد مقرره تجاوز کند که دراین صورت مقدار کافی اب نوشیدنی باید در اختیار حیوان باشد تا با نوشیدن اب زیاد ادرار ان زیاد میشود و مقدار سودیم را خارج نمایند تا از تسمم نمك جلوگیری بعمل اید.

# نامه های وارده

## داکتر سیداکبر امیري لعلي

*امر کلینك ولسوالی وارث ولایت بامیان*

همکار عزیز! نامه پر از لطف تان همرای دو مضمون هر یك "کشف ژن ساعت در چشمان قورباغه" و "عرق چیست و چگونه تولید می شود؟" برای ما رسید. و امید است که اینده نیز بما همکار باشید. مضامین شما به بورد مجله تقدیم شد و انشاءالله در صورت لزوم دید هیئت در نشریه اینده به نشر خواهد رسید. شما در نامه تان تذکره نموده بودید که قبلا نیز دو مضمون را جهت نشر ارسال نمودید که البته برای ما رسیده است. یکی ان در نشریه دوم سال دوم در صفحه ۹ به نشر رسیده است. به امید موفقیت و همکاری دایمی تان.

## داکتر محمد عارف

*از VTC کابل*

همکار عزیز! مضمون شما در باره "امراض مشترك بین حیوانات و انسان ها" به ما رسید. از ارسال موضوع دلچسپ شما یك جهان ممنون و امید است که به همکاری خود در اینده نیز به ما ادامه دهید. مضمون شما در نشریه اینده به نشر خواهد رسید. به امید موفقیت مذید شما!

## شریف الله صافي

*د راولپنډۍ د فوجي کالونۍ څخه*

محترمه وروره ستاسی د لیك د رالیږلو څخه په کوم کی چی مو زمونږه د نشریی په هکله مثبت نظر ورکړی دی ډیره مننه کوو او تاسو ته اطمنان درکوو چی مونږه به د خپل توان سره سم خپلو هلو ځلو ته ادامه ورکړو. د ستاسی او د نورو هممسلکانو او محترمو لوستونکو نظریی او وړاندیزونه د نشریی په کیفیت کی عمده رول لري. امید دی چی ټول لوستونکي به خپلی نیکی نظریی او پیشنهادونه وخت په وخت مونږ ته راولیږي تر څو د دوی په زړه پوری مضامین د دوی خدمت ته وړاندی کړو. د ستاسی د بریالیتوب په هیله.